

# دَعِلم خزانه

د بادشاه سلیمان علیه السلام

د چونړ چونړ ضرب الامثالو

په پښتو او انګریزی کښې پیشکش

# دَ عِلم خزانه

د بادشاه سلیمان علیه السلام
د چونړ چونړ ضرب الامثالو
په پښتو او انګریزی کښې پیشکش

# پیژند

# ګلو

## السلام علیکم!

په دې کتاب کښې دَ حکمت بادشاه حضرت سلیمان علیه السلام دَ مشهور کتاب نه ځنې خبرې نقل کړې شوې دی. دا ډیرې عملی خبرې دی او اُمید لرم چه هر یو لوستونکے به ترې ډیره ښیګړه تر لاسه کړی.

# مثالونه

## (اول باب)

۲: دَ حِکمت او دَ تربیت دَ حاصلولو د پاره
او دَ پوهے دَ خبرو دَ پیژندګلو د پاره

۳: په هوښیارتیا او په صداقت او په انصاف کښے
او په رښتون ولئ کښے دَ تربیت حاصلولو د پاره

۴: سادهٔ زړونو ته دَ هوښیارتیا
ځوان ته دَ عِلم او دَ تمیز بخښلو د پاره

۵: د پاره دَ دے چه هوښیار سړے ئے واؤری
او په عِلم کښے ترقی وکړی او پوهه لَرونکی
خَلق صحیح مشورے پورے وُرسی

۶: او په متلونو او مثالونو سَره
دَ هوښیارانو په خبرو او د هغوی په رازونو پوهه شی

۷: دَ رب ویره د علم شروع دهٔ.
خو بے وقوف دَ حکمت او دَ تربیت سپکوالے کوی.

## (دریم باب)

۳: رحم او ریښتون والے دِ له تا نه جُدا نۀ وی.
تۀ هغه دَ خپلے غاړے هار جوړ کړه.
او دَ خپل زړۀ په تختئ ئے ولیکه.

۴: هم داسے به تۀ دَ خدائے او دَ انسان په نظر کښے قبلیده او هوښیارتیا حاصله کړے.

۵: په خپل ټول زړه سره په رَب باندے توکل وکړه.
او په خپله پوهه باندے یقین مۀ کوه.

۶: په خپلو ټولو لارو کښے هغه وپیژنه.
او هغه به ستا رهنمائی کوی.

۷: ته په خپل نظر کښے هوښیار مۀ جوړیږه.
دَ رب نه ویریږه اؤ دَ بدئ نه په اړخ شه.

۸: دا به ستا دَ نوم صحت او دَ هډوکو تازه ګی وی.

۹: دَ خپل مال او دَ خپل ټول پیداوار په وړومبئ میوؤ سره دَ رب عزت وکړه.

۱۰: هم داسے به ستا خمبے تر سره ډکے وی.

۲۷ : دَ نیکئ دَ حقدارو نه هغه مهٔ منع کوه. تر څو چه ستا په طاقت کښے وی.

۲۸ : هر کله چه دَ ورکولو د پاره له تا سره څهٔ وی.
نو ته خپل ګاونډی ته داسے مهٔ وایه چه اُوس لاړ شه بیا راشه زهٔ به تا له صبا درکړم.

## (باب څلورم)

۱۸ : دَ صادقانو لار دَ سحر دَ رنړا په شان ده. چه د کومے رنړا تر غرمے پورے زیاتیږی.

۱۹ : خو د وران کارو لار دَ تیارے په شان ده. او هغوئ نهٔ پوهیږی چه پَهٔ کومو څیزونو سره به هغوئ تیندک خوری.

۲۰ : اے ځویه ځما په خبرو توجه کوه. ځما په خبرو غوږ ساته.

## (باب پنځم)

۲۲ : وران به په خپله بد کارئ کښے ګیر شی او هغه به هم دَ خپلو ګناهونو په رسو سره وتړلے شی.

۲۳ : هغه به دَ تربیت نه موندلو په سبب سره مړ شی.
او دَ خپلے سختے بے وقوفئ په وجه به بے لارے شی.

## (باب شپږم)

۶: اے ناراسته د میږی خوا له لاړ شه. او د هغۀ په طریقو باندِ ے
غور وکړه.

۷: با وجود دَ دِ ے چه دَ هغۀ نه څوک مشر شته او نۀ ئے ناظر نه
حاکم.

۸: دَ گرمئ په موسم کښے دَ خپل خوراک تیار ے کوی او د لَو په
وخت خپله غله راټولَوِی.

۱۶: شپږ څیزونه دی چه دَ هغے نه دَ رب نفرت د ے. بلکه اووه څیزونه
دی چه دَ هغے نه دَ رب کرکه کیږی

۱۷: اوچتے سترگے. دروغژنه ژبه.
او دَ بے گناه وینه بهیونکے لاس.

۱۸: او دَ بدو منصوبو تړونکے زړه.
دَ وران کارئ د پاره تیز تلونکی قدمونه.

۱۹: دروغژن گواه کوم چې په دروغه شهادت کوی.
او کوم چې په ورونړو کښے جدائی پیدا کوی.

۲۷: ولے داسے کیدے شی چه سړے دِ په خپله سینه کښے اور وساتی او د هغه کپړے دِ ونه سوزی.

## (باب نهم)

۸: تهٔ قمار مه ملامتوه داسے نهٔ وی چه هغه له تا سره هم کینه اُوساتی.

۹: دَ هوښیار تربیت وکړه نو هغه به نور هم هوښیار شی.
صادق ته خود نه وکړه. او هغه به په علم کښے ترقی وکړی.

## (باب لسم)

۲: دَ وران کارئ خزانے فضول دی.
خو صداقت دَ مرګ نه خلاصوی.

۴: څوک چه په سُست لاس سره کار کوی کنګال بهٔ شی خو د محنتی لاس مالدار وی.

۶: د صادق په سر باندے برکتونه وی.
خو د وران کارو خُلهٔ ظلم پټوی.

۷: دَ صادق سړی یادګار بختور دے خو د وران کارو نوم به وسوزی.

۱۹: دَ خبرو زیات والے دَ غلطئ نه خالی نۀ وی. خو څوک چه شونډے
په قابو کښے ساتی هغه هوښیار دے.

۲۱: د صادق شونډے ډیرو ته خوراک وررسوی
خو بے وقوف به دَ کم عقلئ په وجه مری.

۲۷: دَ رَب ویره عمر زیاتوی.
خو دَ وران کارو ژوندون بَه کم کړے شی.

۳۰: صادقان به هیڅکله هم ونۀ خوزیږی.
خو وران کاری به په زمکه باندے قائم پاتے نه شی

(باب یولسم)

۱: دُهوکه کوونکے تلے نه دَ رَب نفرت دے.
خو په پورا تول کښے د هغه خوشحالی ده.

۲: دَ تکبر سره سپک والے رازی.
خو دَ عاجزانو سره حکمت دے.

۳: د صادقانو صداقت به دَ هغوئ رهنمائی وکړی.

۱۲: د خپل ګاونډی بے عزتی کوونکے کم عقل دے.
خو د پوهے خاوند غلے وسیږی.
۱۴: د نیکے مشورے نه بغیر خلق تباه کیږی.
خو دَ مشورو ورکوونکو په زیاتوالی کښے سلامتی ده
۱۵: څوک چه دَ نا آشناؤ ضمانت کوی سخت نقصان په پورته کړی.
خو چه څوک د ضمانت نه نفرت کوی. هغه بے خطرے دے.

۲۵: دَ سخی زړه لوئے کړے شی.
اُوبۀ کوونکے به په خپله هم اُوبۀ کړے شی.

(باب دولسم)

۱: څوک چه دَ تربیت سره دوستی کوی. هغه دَ عِلم سره آشنائی کوی.
خو څوک چه رټلو نه نفرت کوی هغه ځناور دے.

۱۰: صادق د خپل ځاروی د ځان په شان خیال ساتی.
خو دَ وران کارو رحمت هم پۀ شان د ظُلم دے.

۱۳: دَ شونډو په غَلطو کښے دَ وران کاری د پاره پهانسی ده
خو صادق به دَ مصیبت نه بچ شی.

۱۲: دَ بے وقوف قهر زر څرګندیږی.
هوښیار پښیمانی پټوی.

۱۷: چه څوک غلطی پټوی د دوستیٔ خواهشمند دے.
خو چه څوک داسے خبرے بیا بیا چیړی په دوستایو کښے جدائی اچوی.

۱۸: دَ بے ویرے ویونکی خبرے دَ تورے په شان څیرل کوی. خو دَ هوښیار ژبه صحت بخښی

۲۲: دَ دروغژنو شونډو نه دَ رَب نفرت دے.
خو دَ رِښتیا ویونکی په رښتِنیٔ کښے د هغه خوشحالی ده.

۲۸: د صداقت په لاره کښے ژوندون دے.
او دَ هغه په لاره هیڅکله هم مرګ نشته.

## (باب دي: ارلسم)

۳: دَ خپلے خُلے ساتونکے د ځان حفاظت کوی.
خو هغه چه ځوک خپلے شونډے پرانزے تباه بشی

۱۱: چه کوم دولت په ناجائزه حاصل کړے شی.
هغه به کم شی.
خو په محنت سره دَ جمع کوونکی دولت به زیاتیږی
۱۲: دَ راتلونکی اُمید په حصارتیا کښے زړه رنځیږی
خو د ارمان پوره کیدل د ژوندون د ونے په شان دے
۱۹: هر کله چه ارمان پوره شی نو زړه ډیر خوشحالیږی.
خو د بدئ دَ پریخودو سره بے وقوف خفه شی.
۲۰: ځوک چه دَ هوښیارو سره ګرزی هوښیار به شی
خو دَ بے وقوفو ملګرے به تباه شی.

## (باب څوارلسم)

۱: هوښیاره ښځه خپل کور ودانوي.
خو بې وقوف ئې په خپلو لاسو سره تباه کوي.
۲: رښتونې د رب نه ویرېږي.
خو کوږ تلونکې د هغې سپک والې کوي

۱۲: داسې لاره هم ده کومه چه انسان ته نیغه ښکاري.
خو دَ هغې په آخره کښې دَ مرګ لارې دي.

۲۰: دَ خوار نه دَ هغه ګاونډي هم نفرت کوي
خو دَ مالدارو دوستان ډیر دي.
۲۱: خپل ګاونډي ته سپک کتونکې ګناه کوي.
خو په خوار باندې رحم کوونکې بختور دې.

۲۳: په هر قسمه محنت کښې ګټه ده.
خو دَ خلې په خبرو کښې تشه محتاجي ده.

۲۲: دَ رب په ویره کښې مضبوط اُمید دې.

۳۰: دَ تسلئ نه ډک زړه دَ بدن صحت دے.
خو بُغض دَ هډوکو وروست والے دے.

۳۴: صداقت قام ته ترقی بخښی
خو دَ ګناهونو په سبب دَ قامونو سپک والے دے.

## (باب پنځلسم)

۱: نرم جواب قهر لرے کوی.
خو سختے خبرے د غضب نه ډکے وی.

۳: دَ رب سترګے په هر طرف دی.
او د نیکانو او دَ بدانو څوکئ کوی.

۸: دَ وران کارو دَ قربانئ نه د رب نفرت دے.
خو دَ رښتونے په دعا کښے دَ هغه خوشحالی ده.

۱۷: دَ مینے کوونکی په کور کښے لږ شان ساګ دال دَ نفرت کوونکی
په کور کښے دَ سورب غوئی نه غوره دے.

۲۳: سړے دَ خپلے خُلے په جواب سره خوشحالیږی.

او دَ موقعے خبره ڜومره ښه ده

۲۷: دَ ګتې حرصناک خپله کورنۍ خفه کوی.
خو هغه ڜوک چه دَ رشوت نه نفرت کوی ژوندے به پاتے شی.

۳۰: دَ سترګو نور زړه خوشحالَوی.
او خوشحالی په هډوکو کښے سُورب والے پیدا کوی.

۳۳: دَ رب ویره دَ حکمت دَ تربیت د پاره ده.
او دَ ترقۍ نه مخکښے عاجزی ده.

(باب شپاړسم)

۲: دَ انسان په نظر کښے دَ هغه ټول کارونه پاک دی
خو رَب په روخونو ازمیښت کوی.

۷: هر کله چه دَ انسان چال چلن دَ رب خوښ شی. نو هغه دَ هغۀ
دښمنان هُم د هغۀ دُوستان جوړوی

۱۸: د تباه کیدو نه مخکښے تکبر
او د بربادیدو نه مخکښے لوئی ده.

۲۴: دَ زړه دَ خوښې خبرې دَ شهاتو ګبين دې.
هغه په زړه باندې خوږې لړې او دَ هډوکو د پاره شفا ده.

۳۱: سپين ويختهٔ د ښائست تاج دې.
هغه به دَ صداقت په لاره باندې اُوموندلې شي.

(باب اُوَلسم)

۱: دَ هغې کور نه دَ سلامتئ سپوره نوړئ غوره ده.
کوم چه دَ نعمت نه ډک وى خو دَ هغې سره جګړې وى

۳: دَ سپينو زرو دَ پاره کټورئ ده او د سرو د پاره بټئ ده. خو زړونه رَب ګورى.

۱۰: دَ پوهې په خاوند. يوه زورنه
په بې وقوف دَ سلو کروړو نه زيات اثر کوى.

۱۲: د سړى د هغې پړانګ سره پيښيدل چه د کوم بچى نيولى شوى وى. دَ هغې نه غوره دى. چه دَ بې وقوف په بې وقوفئ کښې دَ هغه مخې ته راشى.

۱۴: دَ جنګ شروع دَ اُوبو د راوتو په شان ده.
په دِے وجه دَ جنګ نه مخکښے بحث پرېږده.

۱۷: دوست هر وخت مینه ښائی.
او وورور د مصیبت د وَرځے دَ پاره پیدا شوے دے

۲۲: خوشحاله زړهٔ شفا بخښی
خو غمژن زړهٔ هډوکی وچوی.

۲۸: بے وقوف هم تر څو پورے چه غلے وی هوښیار ګڼړلے شی. خو
څوک چه خپلے شونډے بندے ساتی هوښیار دے.

(باب اتلسم)

۱۰: دَ رَب نوم مضبوط برج دے.
صادق هغے ته ور ځی او په امن کښے اوسیږی.

۱۲: دَ سړی په زړهٔ کښے تکبر د هلاکت مخے ته تیریدل دی.
او عاجزی دَ عزت مخے ته.

۱۷: څوک چه خپله دعویٰ بیانوی ربنتونے معلومیږی خو دویم د هغے حقیقت څرګندوی.

۲۱: مرګ او ژوندون د ژبے په قابو کښے دی. او څوک چه د هغے سره دوستانه کوی دَ هغے میوه به خوری

۲۴: څوک چه دَ ډیرو سره دوستی کوی د ځان دَ بربادئ د پاره کوی. خو داسے دوست هم شته کوم چه دَ ورور نه زیاته مینه ساتی.

(باب نولسم)

۲: دا هم ښه نۀ دۀ چه روح دِ دَ علم نه خالی وی څوک چه په تلو کښے جلتی کوی هغه خطا کیږی.

۱۱: دَ اِنسان پوهه دَ هغه په قهر کښے نرم والے جوړوی. او د خطا په معاف کولو کښے د هغه شان دے

۱۳: بے وقوف زوئے د خپل پلار د پاره مصیبت دے.
او یوه جګړماره ښځه دَ هغه څاڅکی په شان ده. چه هغه همیشه څاڅی.

۲۲: قبلیدل دَ سړی په احسان کولو کښې دی.
او خوار دَ دروغژن نه غوره دے.

(باب شلم)

۵: دَ سړی دَ زړهٔ خبرے دَ ژورو اوبو په شان دی. خو دَ پوهے خاوند به هغه راوباسی.

۹: څوک وائی چه ما خپل زړهٔ صفا کړے دے او زهٔ دَ خپلے ګناه نه پاک شوے یم؟

۱۴: اخستونکے وائی چه بیکاره دے بیکاره خو هر کله چه روان شی نو فخر کوی.

۲۲: ته داسے مهٔ وایه چه زهٔ به دَ بدئ بدله اخلم په رب باندے یقین وکړه او هغه به تا بچ کړی.
۲۳: په دَوؤ تَلو تللو سره د رب نفرت دے او د دهوکے تله صحیح نهٔ ده.

۲۷: دَ سړی ضمیر دَ رب ډیوه ده. کوم چه دَ هغهٔ ټول باطنی حال معلوموی

## (باب یویشتم)

۲: دَ اِنسان هر یو کار دَ هغهٔ په نظر کښې صحیح د ے.
خو رب زړونه ګوری.
۳: صداقت او انصاف د رب په نِزد دَ قربانئ نه زیات خوښ وی.

۲۳: څوک چه دَ خپلے خُلے او دَ خپلے ژبے ساتنه کوی خپل ځان دَ
مصیبتونو نه محفوظ ساتی.

۲۸: دروغژن ګواه به تباه شی.
خو کوم سړی چه خبره اوریدلے دهٔ. هغه به غلے پاتے نشی.

۳۱: دَ جنګ د ورځو د پاره آس خو تیارولے شی
خو فتح د رب له طرفه ده.

## (باب یویشتم)

۲: مالداره او غریب د یو بل سره ملاویږی. د هغوی ټولو خالق هم
رب د ے.

۶: د هلک په هغه لار کښې تربیت وکړه چه په کومه دَ هغه تلل دی.

که بوډا هم شی دَ هغے نه به مخ ونۀ ګرزوی.

۷: دولت مند په مسکین باندے حکم کؤنکے وی
او قرض اخستونکے دَ قرض ورکونکی نوکر وی.

۱۱: څوک چه پاک زړۀ غواړی د هغۀ په شونډو کښے مزه ده. او بادشاه به دَ هغه دوست وی.

۱۵: دَ بے وقوفئ تعلق دَ هلک دَ زړۀ سره د ے.
خو دَ تربیت لخته به هغه دَ هغۀ نه لرے کړی

۲۹: ته چه څوک دَ هغۀ په کار کښے مخنتی ګورے؟
هغه به دَ بادشاهانو په حضور ولاړ وی.

(باب درویشتم)

۴: دَ دولت مند کیدو د پاره مۀ خفه کیږه.
دَ خپلے هوښیارتیا نه منع شه.

۱۷: ستا زړه دِ په ګناه ګارو باندے حَسد ونۀ کړئ بلکه تۀ شپه ورځ دَ رَب نه وویریږه.

(باب ثلیرشتم)

۵: هوښیار سړے زورآور دے.
خو د عِلم د خاوند زور ورځ په ورځ زیاتیږی

۱۷: هر کله چه ستا دُښمن پریوزی نو خوشحالی مۀ کوه
او هر کله چه هغه تیندک اُخوری نو خوشحالیږه مۀ
۱۸: هسے نه چه رب دِے ته اوګوری او خفه شی.
او خپل قهر دَ هغه نه پورته کړی.
۱۹: ته دَ بدئ کوونکو په سبب سره مه خفه کیږه.
او په وران کارو باندے حسد مۀ کوه.
۲۰: ځکه چه دَ بدئ کوونکو د پاره هیڅ اجر نشته

(باب پنځویشتم)

۱۱: دَ موقعے خبرے د سپینو زرو په ټوکرئ کښے د سرو منړه ده.

۱۵: دَ برداشت کولو په سبب حاکم راضی کیږی
او نرمه ژبه خو هډوکی هم ماتوی.

۱۷: دَ خپل ګاونډی کور ته دَ بیا بیا تللو نه خپلے پښے منع کړه. داسے نه وی چه هغه له تا نه تنګ شی او نفرت اوکړی

۱۹: دَ مصیبت په ورځ په بے وفا سړی باندے یقین کول مات غاښ او وتلے پښه ده

۲۱: که چرے ستا دُښمن اوږے وی نو هغه له هم ډوډئ ورکړه او که تږے وی نو اوبۀ ورله ورکړه.

۲۲: ځکه چه په داسے کولو سره تۀ دَ هغۀ په سر باندے د سروټکو ډیرے لګوے.

۲۶: د صادق د وران کارئ مخے ته غورزیدل لکه چه خړه چینه او ناپاکه چینه ده.

۲۷: ډیر شهات خوړل ښۀ نۀ دی.
دَ خپلے مشرئ طالب کیدل ښائست والے نۀ دے.

۲۸: څوک چه په خپل نفس باندے اختیار مند نه دے.
هغه دَ بے دیواله او نړیدلی ښار په شان دے.

(باب شپږویشتم)

۴: بے وقوف ته دَ هغه دَ بے وقوفئ په مطابق جواب مۀ ورکوه. داسے نه وی چه ته هم دَ هغه په شان شے.

۱۷: څوک چه لاره باندے په پردو جګړو کښے رادانګی د هغه چا په شان دے. څوک چه سپے د غوږ نه نیسی.

۲۰: چه لرګے نه وی نو اور مری.
نو چه کوم ځائے غیبت کوونکے نۀ وی هلته جګړه ختمیږی.

۲۳: مینه ناکے شونډے د بد خواه زړۀ سره د هغے ټیکری په شان دی. چه د هغے د پاسه نقلی سپین زر خیژولے شوے وی.

(باب اُوه ویشتم)

۱: د صبا په باره کښے لوئی مۀ کوه.
ځکه چه تۀ نۀ پوهیږے چه هم په یوه ورځ کښے څۀ وشی.
۲: بل څوک دِ ستا صفت اوکړی. نۀ چه ستا خُلۀ

۵: دَ پټے مینے نه ښکاره ملامته کیدل غوره دی.

۶: چه کوم زخم د دوست د لاسه اولږی دَ وفا نه ډک وی خو دَ دښمن ښکلول ډیر وی.
۷: موږ ځان دَ شهاتو ګبین نه هم نفرت کوی.
خو دَ اوږی د پاره هر تریخ څیز هم خوږ د ے.

۱۷: لکه څنګه چه اوسپنهٔ اوسپنهٔ تیره کوی.
هغه شان دَ سړی د دوست دَ مخ روښنائی دَ هغه نه ده.

۱۹: لکه څنګه چه په اُوبو کښے مخ دَ مخ په شان وی.
هم دغسے د سړی زړه دَ سړی سره.

(باب اته ویشتم)

۳: په مسکین باند ے ظلم کوونکے حاکم
دَ هغه تیز باران په شان د ے چه یوه دانه هم نه پریږی.

۵: وران کار ے دَ انصاف نهٔ نه د ے خبر
خو دَ خدائے طالب په هر څهٔ پوهیږی.
۶: رښتونے مسکین
دَ دروغژن دولت مند نه غوره د ے.

۹: څوک چه خپل غوږونه په دے سبب ګرزوی چه شریعت وانهٔ وَری.
دَ هغهٔ دُعا هم د نفرت نه ډکه دهٔ.

۱۳: څوک چه خپل ګناهونه پټوی کامیاب به نَشی
خو څوک چه د هغے اقرار کوی او هغه پریږدی په هغهٔ باندے په
رحمت وی.

۲۱: طرفداری کول ښهٔ نهٔ دی.
او نه دا چه سړے دِ ډوډئ د یوے ټکړے د پاره ګناه وکړی.

۲۳: دَ سړی رټونکے به آخر
تش په ژبه خوشامد کوونکی نه زیات خوښ وګرزی

(باب یوکم دیرشم) ( نهویشتم)

۴: بادشاه په انصاف سره خپل حکومت ودانوی
خو رشوت ورکوونکے هغه ورانوی.

۱۱: بے وقوف خپله غصه اوباسی
خو هوښیار هغه ایساروی او برداشت کوی ئے.
۱۲: که چرے یو حاکم دروغو ته غوږ ږدی

نو د هغه ټول خدمت کوونکی وران کاری جوړیږی

**۲۵**: د انسان ویره جال د ے
خو چه څوک په رب باند ے توکل کوی محفوظ به وی

(باب د یرشم)

**۵**: دَ خدائے هر حکم پاک د ے هغه دَ هغوی ډال د ے. څوک چه په هغه باند ے توکل کوی.

**۱۵**: د ژور ے دوه لونړه دی کومے هم دا چغے وهی چه راکړه راکړه
در ے دی کومے به چه هیڅکله هم مړیږی نۀ
بلکه څلور دی کومے چه هیڅکله هم بس نۀ وائی.
**۱۲**: عالم ارواح او دَ شنډ ے رحم
او زمکه کومه چه اوبه نۀ کړ ے شوه.
او اور کوم چه هیڅکله "بس" نه وائی.

(باب یو د یرشم)

**۱۰**: نیکه ښځه چا ته ملاویږی؟
ځکه چه د هغے قیمت دَ ملغرو نه هم زیات د ے.

۱۱: دَ هغې دَ خاوند زړه په هغې باندې اعتماد کوی
او هغهٔ ته به دَ ګټې کمې نه وی.
۱۲: هغه به دَ خپل عمر ټولو ورځو کښې دَ هغې سره هم نیکی کوی.
بدی به نهٔ کوی.

۱۵: هغه هم دَ شپې راپاسی
او خپلې کورنۍ ته به خوراک ورکوی
او خپلو وینځو ته کار ورکوی.

۲۰: هغه خورانو طرف ته خپل لاسونه خوروی.
هَاؤ هغه خپل لاس حاجتمندو ته خوروی.
۲۱: هغه د خپلې کورنۍ د پاره له واؤرې نه نهٔ ویریږی
ځکه چه د هغې په خاندان کښې هر یو سرې جامې اغوستی دی.

۲۳: دَ هغې خاوند په دروازو کښې مشهور دے.
هر کله چه هغه دَ ملک دَ مشرانو سره کښینی

۲۷: هغه په خپله کورنۍ باندے ښهٔ نظر ساتی.
او هغه د سستۍ خوراک نهٔ کوی.
۲۸: دَ هغې ځامن پاسی هغې ته بختوره وائی.
دَ هغې خاوند هم د هغې صفت کوی.

۳۰: حُسن دُهوکه او ښائست باطِل دے.
خو هغه ښځه کومه چه دَ رَب نه ویریږی هغه به وُستائلے شی.



# A Treasury of Knowledge

A Selection of the Proverbs of
KING SOLOMON
in Pushto